# معلمینو ته نصیحتونه

## نصایح للمعلمین

په اخلاص، تقوی او مسلکي حاکمیت روزل شوی معلم

لیکوال: حمد الله شاکری


بسم الله الرحمن الرحيم
﴿ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا
ٱلَّذِينَ سَبَقُونَا بِٱلْإِيمَٰنِ
وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟
رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ١٠ ﴾
S

# معلمینو ته نصیحتونه

(په اخلاص ،تقوی او مسلکي حاکمیت روزل شوی معلم)

لیکوال: حمدالله "شاکري"

# سلام او مبارک احترامات

الحمد لله الذي علم بالقلم علم الإنسان ما لم يعلم. والصلاة والسلام على النبي الأكرم وعلى آله وصحبه ومن اهتدى بهديه إلى يوم الدين...

و بعد:

**تحيه او سلام** دې وي د الله تعالی د جانبه پر معلمينو باندې هغه چې د نسلونو روزنه کوي، خپل وخت، خپل بدن، خپل دماغ په کار اچوي او د زړه وينې خوري تر څو نوي نسلونه د جهالت څخه د علم لورې ته، د بې ادبی څخه د ادب لورې ته، فسق او فساد څخه د دين او تقوی لورې ته، د بغاوت څخه د رجوع لورې ته برابر کړي .

**تحيه او سلام** دې وي پر هغو معلمينو چې خپل احتياجات يې پر خپله سينه کې پټ کړي او په همدې هدف پسې روان دي چې د مسلمانان اولادونه له جهل او ګمراهۍ څخه خلاص کړي د حق طرف ته يې متوجه کړي .

**تحيه او سلام** دې وي پر هغو معلمينو چې غم يې د خلکو د اولادونو، علميت او تربيت وي، دا وکړه او دا مه کوه، څومره دې زده کړ او څه دې وکړل همدا يې غم او هدف وي . د الله تعالی له لورې پر تا باندې سلام او مبارک تحيات وي .

زده کړه او تدريس هغه رسالت او مسئوليت دی چې خلک د هغه په وسيله د ايمان او نور او معرفت طرف ته بلل کيږي او يقيناً چې په دې کار کې لوی اجر دی .

**معلمين كرام !**

اسلامي امت نن د ډيرو سختو فتنو او امتحاناتو سره مخ دی، زمونږ کړېدلی ولس د کفارو د هر اړخيز نظامي، ديني او فرهنګي يرغل سره مخ دی. د دغو اسلام دوښمنو زياته توجه نوي نسل ته ده، دغه د اسلام سر سخته دوښمان غواړي چې نوی نسل ښکار کړي .

نن عصر کې د مسلمانانو لوی غفلت دا دی چې دعوت الی الله يې ترک کړی، فکري روزنه يې ترک کړې معاصرو بلاوو ته متوجه نه دي .

ولس او نوي نسلونه په بېلابېلو بڼو د اسلام دوښمنو له ښکار سره مخ دي لکه: شيطاني مډيا او خپرونې چې هر کور او حتې هر جيب ته يې مخ کړې، شيطاني فلمونه، سريالونه، موسيقي، د تلويزونو، راډيو او موبايل او آي فون لپارې زهرجن تبليغات او داسې نور .

په داسې حالاتو کې معلم داسې دی لکه په صحراء کې يو شپون چې په رمه يې څو ليوان د حملې کولو تابيا لري نو دغه شپون ته څومره توجه او دقت پکار دی؟

د اسلامي امت معلم ! د مسلمانانو د نسلونو روزنکيه! ته نن په همداسې موقف کې ځای لرې ،اسلام دوښمنه ليوان دې تر رمه چاپيره تاو دي ... نور ته فکر وکړه چې څومره پام او فکر پکار دی .

د معلم د مسلکي تربيه او آدابو کتابونه شته، تاسې ته به ورکشاپونه جوړ شوې وي مګر دغه رساله د يو داعي معلم د روزنې لپاره تر تيب شوې هغه داعي او خير غوښتونکی معلم چې حتی ماهيانو پخپلو ځالو کې هغه ته د خير دعا کوي .

رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«ان الله وملائكته وأهل السموات والأرضين حتى النملة في حجرها، وحتى الحوت ليصلون على معلم الناس الخير» (أخرجه الترمذي، ۵/ ۵۰) .

ژباړه:(يقيناً الله تعالى، د هغه ملائكې، د آسمانونو او ځمكو اهل او حتى په غارونو كې ميږيان او حتى ماهيان په هغه باندې درود وايي چې خلكو ته په خير باندې لارښوونه كوي) .

فيض القدير ليكي: د الله د جانبه درود رحمت دى، د ملائكو د جانبه استغفار او ښڼه ده او د نورو د جانبه دعا ده.

## هغه مهم صفات چې باید په یو معلم کې موجود وي

### اول – اخلاص:

داعي او خیر غوښتونکي معلم ته ښایي چې د درس ورکولو دنده د الله تعالی د رضایت وسیله او خپل نیت خالص د الله تعالی لپاره ورګرځوي هغه که شرعي علوم وي، د عصري علومو تدریس وي نو نیت به یې دا وي چې دا علوم د نن عصر ضرورت دی او په دې علومو سره د اسلامي امت د عصري قضایاوو مشکل حلیږي او د پردیو له احتیاج څخه خلاصیږي او زده کوونکو ته نیکه اسلامي ترتبیه، په خیر سره امر کول او له بدو څخه منع کول، نصیحت، اصلاح او تأدیب کې یې باید نیت د الله تعالی رضا وي نه ریا او نه هم ځان ښودنه او نه په دې نیت چې خلک زما صفت وکړي . ځکه چې هر عمل په نیت پورې اړه لري .

جناب رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«إنما الأعمال بالنيات وإنما لكل امرئ ما نوى» (البخاري ).

ژباړه: د ټولو عملونو قبلېدل په نیت پورې اړه لري، انسان ته د ده د نیت موافق ثواب او بدله ورکول کیږي.

د چا چې نیت خالص شو د خیر کار لا څه چې مباح عمل عبادت حسابیږي او هغه ته ثواب ورکول کیږي .

أن المباحات إذا نوى بها الإنسان الثواب عند الله -جلَّ وعلَا- فإنها تدخل في ما يثاب عليه (شرح الأربعون النووية / دوكتور عبدالحكيم العجلان) .

يعنې:(کله چې په مباح کارونو کې د انسان نيت د الله جل وعلا د جانبه ثواب وي نو په هغه سره اجر او ثواب دی ). څوک چې الله تعالی ته خوښ شو، الله تعالی د مخلوق په زړه کې د هغه محبت ور اچوي .

نو کله چې معلم خپل نيت خالص کړي نو دی به د الله تعالی په نزد صالح او مقبول بنده وي، او د خلکو او زده کوونکو په زړونو کې به د ده محبت وي .

د بخاري په حديث شريف راغلي دي :«إذا أحبَّ الله العبد نادى جبريل إن الله يحب فلاناً فأحببه فيحبه جبريل فينادي جبريل في أهل السماء إن الله يحب فلانا فأحبوه فيحبه أهل السماء ثم يوضع له القبول في الأرض (البخاري :٣٢٠٩ ).

ژباړه:کله چې الله تعالی ته کوم بنده خوښ وي نو جبرئيل ته آواز کوي چې فلانی بنده الله ته خوښ دی ته هم هغه خوښ کړه نو جبرئيل هغه خوښ کړي او د آسمان اهل ته آواز وکړي چې فلانی بنده الله تعالی ته خوښ دی نو تاسې هم هغه خوښ کړئ (له هغه سره مينه وکړئ ) نو د آسمان اهل هم هغه خپل دوست او خوښ جوړ کړي بيا په همدې توګه د ځمکې د اهل هم خوښ او مقبول شي .

**دوهم – تقوی :**

تقوی د هر مسلمان د پاره مهمه او همدا تقوی د مسلمانۍ اصلي مقصد دی، خو د يو تربيه کوونکي، داعي معلم لپاره تقوی زيات اهميت لري، تقوی د شرعي اوامرو پر ځای کول او د منکراتو او حرامو څخه پرهيز کولو ته وايي .

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا الله حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ] (آل عمران: 102). ژباړه:(ای مؤمنانو ! له الله څخه د هغه د شان په پرتله وډارېږئ او باید تر مرګه په اسلام ټينګ پاتې شئ).

رسول صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«اتَّقِ اللهَ حَيْثُمَا كُنْتَ، وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا، وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ » (رواه الترمذي- حديث حسن). ژباړه:(هر چېرې چې وې له الله تعالى څخه وېرېږه، د بدی وروسته نيکي کوه تر څو نيکي بدي له مينځه يوسي او د خلکو سره ښه سلوک کوه).

او هر چا چې تقوی اختيار کړه الله تعالى به هغه ته د دنيا او آخرت کارونه آسانه او د داسې طرف نه به زرق ورکوي چې د ده ګمان نه وي، لقوله سبحانه وتعالى: [وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا * وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لا يَحْتَسِبُ] (الطلاق: ٢، ٣)

ژباړه:((او څوک چې د الله څخه ووېرېږي (الله ) ور ته (د ستونزو څخه ) د وتلو لار جوړوي، او هغه ته د داسې لارې نه رزق ورکوي چې (په خپله ) ګمان نه کوي)).

کله چې معلم د تقوی په جوهر نه وي ښايسته شوی نو په خپلو اسلامي تعاملاتو او مناهجو کې به بې بندباره وي، په درس ورکولو کې به اخلاص نه لري، د زده کوونکو تر مينځ به عدل نه چلوي، په نمرو کې به واسطه بازۍ او فريب څخه کار اخلي .

د زده کوونکو د سالمې تربيې پر ځای به د هغوی د ديني، اخلاقي او ادبې تربيه د نقصان سبب ګرځي .

هغه معلم چې واسطې او پيسو په مقابل کې کوم زده کوونکي ته زياتې نمرې ورکوي يا کوم زده کوونکي ته نقل ورکوي، په پټه توګه ځوابونه ورکوي خاين دی او د څو پيسو په بدل کې خپل ديانت خرڅوي او آخر به د داسې بدنامۍ سره مخ شي چې بيا به ده ته د هميش لپاره تور داغ وي .

پس تقوی ديو معلم تربيه کوونکي او مربي لپاره د عزت او وقار ستر جوهر دی.

**دريم: د مسئوليت ادا کول :**

معلم د زده کوونکي د ټولو حالاتو د مراقبت او نظارت درس او تربيې په باب مسئول دی او ددې مسئوليت پوښتنه به ورڅخه کيږي .

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ » (رواه البخاري). ژباړه: ((هر يو د تاسې راعی (شپون) دی او هر يو د تاسې د خپل رعيت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دي.

راعي هغه ساتونکي ته وايي چې د خپلو ماتحتو ساتنه ور په غاړه وي لکه: اداره، صنف ،کورنۍ او نور او د ساتنې څخه دلته مطلب د عدل او مصالحو قيام دی )).

ابن عدي په صحيح روايت له انس رضی الله عنه څخه روايت کړی چې :

«إِنَّ اللَّه سَائِل كُلّ رَاعٍ عَمَّا اِسْتَرْعَاهُ حَفِظَ ذَلِكَ أَوْ ضَيَّعَهُ».

ژباړه: (يقيناً الله تعالی د هر شپونکي، هر مسئول نه د خپل مسئوليت په باره کې پوښتنه کوي چې د هغه ساتنه يې کړې او که يې هغه ضايع کړی دی ).

نو پر معلم باندې واجبه ده چې خپل مسئولیت په ښه شان سرته ورسوي، کچېرې د معلم د بې توجهی او سستی په وسیله د زده کوونکو سلوک خراب شي د انحراف طرف ته لاړ شي نو دا به د معلم پر غاړه یو بار وي چې د داسې بار پورته کول به په یوم أکبر (قیامت ) کې ډیر سخت وي .

نو همدا نن ورځ خپل بارونه سپک کړئ .

بس تاسې ته د نوي نسل د پالنې لوی امانت او رسالت سپارل شوی دی دغه امانت په داسې توګه تر سره کړئ چې الله تعالی در څخه راضي شي، او تل د خپلو نیمګړتیاوو په اړه دا فکر کوه چې زه څنګه کامیاب معلم شم تر څو په کامل ډول خپل مسئولیت ادا کړم .

**څلورم – په نیکۍ امر کول او له بدۍ څخه منع کول :**

أمر بالمعروف او نهی عن المنکر د هر مؤمن نارینه او ښځې لپاره کلکه اسلامي فریضه ده او دا د مؤمنانو هغه صفت دی چې له منافقانو څخه یې جلا کوي .

لقوله سبحانه وتعالی: [وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ..] (التوبه ۷۱ ). ژباړه:(او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځینې د ځینو نورو دوستان دي امر کوي په نیکی او له بدلیو نه خلک منع کوي) .

[الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ...] (التوبه ۶۷ ) . ژباړه: (منافقان سړي او منافقانې ښځې ځینې له ځینو نورو نه ،هغوی د بدۍ په لور بلنه کوي او له نیکۍ څخه منع کوي) .

هيڅ مؤمن نجات نشي موندلای څو پورې چې دغه دنده تر سره نه کړي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ] ( قسم دی په زمانه يقيناً ټول انسان په زيان او خسران کې دي) .

مګر يوازې هغه کسان کامياب دي چې څلور صفات ولري او دا څلور دورې ټولې پوره کړي .

[إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ] (العصر ۱-۳).

ژباړه:(پرته له هغو کسان چې ايمان راوړی او نيک عملونه يې کړي وي او يو تر بله يې وصيت کړی وي په حق سره او وصيت يې کړی وي په صبر سره ).

**اول صفت:**

هغه کسان کامياب دي چې ايمان يې راوړی او پخپل ايمان کلک ودريږي .

**دوهم صفت:**

صالح اعمال ترسره کړي چې د ريا او نفاق څخه پاک وي لکه لمونځ، زکات او نور ....

د عمل الصاحات په سر کې لمونځ قرار لري، کچېرې د بنده لمونځ صحي وو نور اعمال يې هم صحي دي او د قيامت په ورځ د لمانځه له مخې د نورو اعمالو تلل دي او که لمونځ خراب وو ټول دنيوي او آخروي مسئوليتونه او کارونه يې خراب دي، د لمانځه کمال په جومات کې په جماعت سره ادا کول او د ښځې لپاره پخپل کور کې په پخپل وخت لمونځ کول دي .

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه خپلو امراء او واليانو ته وليکل: [إنَّ أهم أمركم عندي الصلاة فمن حفظها فقد حفظ دينه، ومن ضيّعها فهو لما سواها أضيع، ومن المحافظة عليها أداؤها جماعة فی المسجد، وفي] ( ابن القيم الجوزية ص ۴۰۳.۴۰۴).

ژباړه: تر ټولو مهم د تاسې له أمورو څخه ماته لمونځ دی ،پس هر چا چې د هغه حفاظت وکړ هغې خپل دين وساتلو او چا چې هغه ضايع کړ هغه ته د نورو شيانو ضايع کول آسان دي او د هغه محافظت دا دی چې لمونځ په جمع په جومات کې ادا شي.

**دريم صفت :**

التواصي بالحق (په حق سره توصيه ده ) ځکه چې دين نصيحت دی او ددې څخه أمر بالمعروف او نهی عن المنکر مراد دی تر څو سړی مصلح جوړ شي .

**څلورم صفت :**

التواصي بالصبر (په صبر باندې توصيه کول)، او صبر لاندې مراتب لري :

۱- په طاعاتو باندې صبر کول.

۲- په ګناهونو باندې صبر کول.

۳- د حق بيان او أمر بالمعروف او نهی عن المنکر (په نيکو کارونو امر کول او له بدو کارونو څخه منع کول) له مشکلاتو سره تړلی دي نو په دې مشکلاتو باندې صبر کول پکار دي ځکه چې دا لوی کار دی،د پيغمبرانو عليه السلام لاره ده سترې حوصلې او استقامت ته ضرورت لري .

۴- د الله تعالی په تقديراتو باندې راضي کيدل، په مشکلاتو او مصيبوتو باندې صبر کول ځکه چې دا امتحان دی .

**پنځم - داعي معلم دې بېړه نه کوي:**

د خپل دعوت، تعليم او کوښښ ثمرې او نتجې ته بيړه او عجله مه کوه، ته نن د کښونو په کرلو لګيا يې او د کرلو سره سم حاصلات مه غواړه .

ستا سره چې د زده کوونکو د نيکې تربيې او د علمي سويې د لوړوالي غم دی نو خپل کوښښ او خير طرف ته دعوت لږې لږې خبرې کمې مه ګڼه همدا وړې وړې خبرې د وړو ماشومانو په دماغ ځای نيسي .

رسول صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى يَدَيْكَ رَجُلا خَيْرٌ لَكَ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَغَرَبَتْ» (الطبراني:۹۲۵ ). ژباړه: که الله ستا د لاس څخه يو بنده ته هدايت وکړي ستا لپاره د ټولو کائيناتو نه چې پرى لمر راخيږي او پرېوزى غوره دی .

**د يو ماشوم د لمانځه قيصه :**

کتاب (نصائح للمعلمين مع بداية الدراسة) ليکي: يو وړوکی د دريم ټولګي ماشوم وو، د هغه يو معلم وو چې هر وخت به يې خپل زده کوونکي د الله تعالی اطاعت کولو ته تشويق کول د لمانځه د پابندۍ نصيحت به يې ورته کولو، بلاخره د معلم نصيحت په وړوکي ماشوم اثر کوي او ماشوم په جومات کې د سهار د لمانځه کلک عزم او اراده لري خو څوک به يې ويښ کړي، پلار، نه، مور ،نه، هغه کله ويښ او کله بيده په نا آرامۍ سره شپه سبا کوي تر څو د سهار

جماعت ورڅخه فوت نشي چې بلاخره د سهار آذان کيږي ماشوم د جومات په طرف يوازې په توره شپه او تياره سړک د جومات خواته ځې کله چې جومات ته رسيږي ګوري چې جومات قفل دی، دغه وخت ګوري چې په سړک يو ضعيف بډا کرار کرار چې په خپله همسا لاره معلوموي را روان دی دا بډا سړی د ده د ټولګيوال نيکه دی ماشوم په سپين ږيرې بوډا پسې د وروسته روان شو حال دا چې سپين ږيری ورباندې نه پوهيږي او جومات ته داخل شول لمونځ يې ادا کړ او په بوډا پسې د وروسته را روان شو او خپل کور ته راغی دروازه خلاصه وه ننولو او بيده شو او د کور هيڅ څوک ورباندې خبر نه شول .

ډيرې ورځې تيريږي بلاخره دا بوډا سړی وفات کيږي ماشوم چې کله د هغه له وفات خبريږي ژاړي، پلار يې ورته وايي ای احمد بچيه! ولې ژاړې هغه ستا هيڅ نه کيده، احمد خپل پلار ته قيصه بيانوي چې: زه تا د سهار لمانځه نه بيدارولم او زه د يوازېتوب له امله د دغه بوډا د لمانځه ملګری وم په هغه پسې به د وروسته روان وم خو هغه پر ما نه پوهيده، پلار يې د قيصې په اوريدو ډير وژړل پر خپل عمل خجالت او د خپل وړوکي ماشوم دغه صالح عمل ورباندې اثر وکړ او بلاخره پلار هم جومات ته د تللو کلک عزم وکړ او په دې سره يو نيکمرغه کورنۍ شوه، ددې سعادت سبب څوک وو؟، معلم

وګورئ د معلم ديني تربيت څومره اثر لري .

**د پخوانیو علماوو قیصې :**

ټولو ته څرګنده ده چې د بخاري کتاب د قرآنکریم وروسته د امت په اتفاق صحیح ترین کتاب دی او د دغه کتاب مصنف امام بخاري رحمه الله دی .

ابن حجر رحمه الله د فتح الباري په مقدمه کې د هغه د تألیف له دریو اسبابو څخه مشهور سبب دا لیکي چې: هغه د اسحاق بن راهویه په درسي حلقه کې ناست وو، اسحاق وویل: د تاسې څخه به څوک یو صحیح کتاب د رسول صلی الله علیه وسلم په سنتو کې ترتیب کړي، همدا وړه خبره وه چې ددې په وجه امام بخاري ته الله تعالی د دغه ستر کار توفیق ورکړ .

امام ذهبي رحمه الله چې د الجرح او تعدیل شیخ او د هغه عصر پیژندل شوی عالم د علم حدیث بنسټ ایښونکی وو د هغه د علم حدیث د طلب او زده کړې وجه او سبب یوه وړه خبره وه، دی خپله وایي: چې زما خط امام البزرالي ولید او ما ته یې وویل: ستا خط د محدث په شان دی، نو د هغه وروسته زه د علم حدیث زده کړې ته تشویق شم او دا کار مې پیل کړ .

امام ابې حنیفه جلیل القدر تابعي رحمه الله چې په تقوی او علم یې د امت اتفاق دی .
امام ابی حنیفه رحمه الله ته امام الشعبي رحمه الله نصحیت وکړ همغه وو چې علم فقه ته یې مخ کړه او لویه امام ورڅخه جوړ شو .

معلم صاحب! ته خپل كوښښ كوه او د الله لورې ته د خير دعوت كوه نور د خپل كرلي كښت ثمره الله تعالى ته سپاره .

**شپږم علم :**

مهم كار دا دى چې معلم پخپل مضمون حاكميت ولري او په درس وركولو حاكميت ولري ځكه دا په ده باندې هغه امانت دى چې ادا كول يې واجب دي، او دا همغه كار دى چې دى يې په بدل كې له بيت المال څخه اجرت اخلي .

خو ددې امانت سره سره بايد د شرعي علم له زده كړې غافله نشي هغه علم چې پر نارينه او ښځه فرض دى، هغه علم چې د دنيا او آخرت سعادت دى ،كوم معلم چې شرعي علم ولري هغه د شرعي احكامو، اخلاقو او آدابو او تقوى پابند وي او داسې معلم زده كوونكو ته د تقدير او احترام وړ وي .

زده كوونكي د معلم هرې خبرې ته د قدر په سترګه ګوري، معلم چې كومه د خير خبره، اسلامي آدابو او اخلاقو خبره كوي د زده كوونكو په دماغ كې د كاڼې د ليكنې په څير ځاى نيسي .

كله چې د ماشوم والدين كوم حرام او منكر كار تر سره كوي، ماشوم ورته وايي دا كار مه كوئ ځكه چې مونږ ته مو خپل معلم ويلي وو چې داسې كول حرام دي.

د علم شرعي څخه اصلي مطلب عمل دى داعي معلم بايد پخپله وينا عمل ولري .

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لاَ تَفْعَلُونَ * كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لاَ تَفْعَلُونَ] (الصف :۲-۳ ). ژباړه: (ای مؤمنانو هغه څه ولی وایئ چې نه یې کوئ، د الله پر وړاندې دا ډیره د قهر او کینې خبره ده چې: هغه څه ووایئ چې کوئ یې نه ).

رسول صلی الله علیه وسلم څخه دغه دعا روایت شوې :« اللهم إني أعوذ بك من علم لا ينفع» ژباړه: ای الله زه پر تا باندې پناه غواړم له هغه علم چې بې ګټې وي (د عمل او نورو ته رسولو پرته وي).

امام شافعي رحمه الله وایي: "ليس العلمُ ما حفظ، ولكنَّ العلم ما نفع"یعنې: (علم هغه نه دی کوم چې یاد شوی وي بلکي علم هغه دی چې نفع رسونکی وي) .

**ماشومان موټر چلوونکی له ناروا کارڅخه منع کوي :**

د تنکیو ماشومانو یو تونس موټر چې هره ورځ به یې زده کوونکي د أقرأ روضة الأطفال مدرسې په لورې نقلول، موټروال به چې کله موسیقي ساز او سرود ونیولو وړو ماشومانو به ورته ویل بند کړه د موسیقۍ اورېدل حرام دي .

کله به چې موټروان سګریټ له جیب څخه بیرون کړو وړو ماشومانو به ورته ویل مه څکوه مونږ ته مو استاذ ویلي دي چې د سګریټو څکول او د موسیقۍ اورېدل حرام دي .

بلاخره موټروال پر خپل عمل خجالت وباسي او د تنکیو ماشومان د نصیحت تر تأثیر لاندې راځي او د ماشونو پر وړاندې د دا ډول عمل جرأت نشي کولای .

## تنکي ماشومان خپل دعوت دوام ورکوي :

څه وخت تیریږي د زده کوونکو انتقالونکی موټر بدلیږي بل موټروان راځي چې د پخواني موټروان په څیر له موسیقۍ اوریدو او سګریټ څکولو سره عادت دی، ماشومان هغه منع کوي خو دا ځل د ماشومان منع کول او د خیر دعوت په موټروان اثر نه کوي، بلاخره دا تنکي ماشومان خپل سر معلم ته شکایت کوي چې مونږ ستا د موټروان څخه په تنګ یو هغه موسیقي ږغوي او سګریټ څکوي او زمونږ خبره نه مني .

سر معلم د زده کوونکو د خبرې په اورېدو سره ټول موټروانان را وغوښتل او هغوی ته یې اعلان وکړ: سر له نن څخه چې هر چا په موټر کې موسیقي ونیوله او سګریټ یې وڅکول هغه به منفق وي.

دا ماشومان د لومړي ټولګي، دوهم او دریم ټولګي تنکې زده کوونکي وو .

## د معلم اقوال او افعال د زده کوونکو لپاره نمونه ده

د معلم هره خبره او عمل د زده کوونکو لپاره نمونه ده او دوی په هغه پسې اقتداء کوي، نو معلم ته پکار ده چې خپلو اقوالو او افغالو ته متوجه شي او لاندې ټکي په نظر کې ونیسي .

**۱- صدق او په وعده باندې وفاء کول :**

صدق او رښتیا د معلم د سر تاج دی، معلم باید پخپلو ټولو خبرو کې رښتیا ویونکی وي، له یو اړخه هره خبره که ښه وي او یا بده د بنده په اعمالو کې لیکل کیږي او له بله اړخه معلم دې دا فکر نه کوي چې زه هر څه وایم زده کوونکي نه ورباندې پوهیږي، داسې فکر کول بې ځایه دي، زده کوونکي ستا په هر خبره پوهیږي او که ستا دروا غ ورته ثابت شي نو بیا ستا په رښتیا هم باور نه کوي .

صدق او رښتینولي د هر مسلمان جوهر دی او د جنت لاره ده .

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«إن الصدق یهدي إلی البر وإن البر یهدي إلی الجنة وإن الرجل لیصدق حتی یکتب عند الله صدیقاً وإن الکذب یهدي إلی الفجور وإن الفجور یهدي إلی النار وإن والرجل لیکذب حتی یکتب عند الله کذاباً» (رواه البخاري والمسلم). ژباړه: (یقیناً صداقت بنده د نیکۍ طرف ته بیایي او نیکي بنده د جنت طرف ته بیایي تر دې پورې چې رښتیا ویونکی سړی د الله په نزد صدیق ولیکل شي، او یقیناً چې دروا غ سړی د بدو کارونو طرف ته بیایي او بد کارونه سړی د اور طرف ته بیایي تر دې پورې چې دروا غ ویونکی سړی د الله په نزد درواجن ولیکل شي).

او پر وعده باندې وفاء کول د مسلمان ستر صفت دی او وفاء نه کول د منافق صفت دی

.

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ] (المائده). ژباړه: (ای مؤمنانو پر خپلو وعدو وفا کوئ).

په وعده وفا کول د مسلمان ستر صفت دی

[وَالَّذِينَ هُمْ لأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ] (المومنون ٨). ژباړه: (او هغه کسان (کامیاب شول) چې دوی د امانتونو او وعدو رعایت کوونکي دي).

د وعدې مخالفت کول د منافقت نښه ده، په حدیث شریف راغلي دي: عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: «آية المنافق ثلاث: إذا حدث كذب، وإذا وعد أخلف، وإذا اؤتمن خان» (البخاري).

ژباړه: (له ابوهريرة نه روایت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: د منافق درې نښې دي: چې کله خبرې کوي دروغ وايي، کله چې وعده وکړي په هغه وفا نه کوي او که امانت ور ته ورسپارل شي په هغه کې خیانت کوي).

**٢- تواضع:**

همدارنګه معلم ته په کار ده چې پخپل ځان کې تواضع راولي او نورو زده کوونکو ته د هغه تعلیم ورکړي .

نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«ومن تواضع لله رفعه الله» (شرح مسلم ١٤١/١٦).

ژباړه: چا چې د الله د پاره تواضع وکړه الله تعالی به یې اوچت کړي .

پوهان وايي: کبر هغه زينه ده چې له آخري پوړ څخه سړی پر ځمکه غورځوي .

**۳- صبر:**

د تدريس او درس ورکولو مهنت د تکليف سره تړلی دی کله معلم له ځينو زده کوونکو څخه بدې خبرې اورې او د هغوی بد حرکات ويني نو هغوی ته دې د ځان فکر نه کوي او دا فکر دې هم نه کوي چې هغوی به ټول اصلاح وي بلکي په صبر او حوصله د هغوی د اصلاح لپاره هڅې کول پکار دي، زمونږ لپاره ستره نمونه معلم الناس محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم دی .

«عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضی الله عنه قَالَ: كُنْتُ أَمْشِي مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم وَعَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيظُ الْحَاشِيَةِ، فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ، فَجَذَبَهُ جَذْبَةً شَدِيدَةً حَتَّى نَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَدْ أَثَّرَتْ بِهِ حَاشِيَةُ الرِّدَاءِ مِنْ شِدَّةِ جَذْبَتِهِ، ثُمَّ قَالَ: مُرْ لِي مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي عِنْدَكَ، فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ فَضَحِكَ، ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ» (بخاری:۳۱۴۹).

ژباړه : (انس بن مالک رضی الله عنه وايي: د نبی صلی الله عليه وسلم سره تللم، او هغه يو نجراني چادر چې پنډې څنډې يې لرلې اغوستی وو، يو اعرابي آنحضرت صلی الله عليه وسلم را ورسيد او چادر يې په سختی ورڅخه کش کړ داسې چې ما د نبی اکرم صلی الله عليه وسلم ورميږ ته وکتل نو د چادر د سخت کش کولو اثر مې پکې وليد، بيا هغه کس وويل: امر وکړه چې د الله تعالی د مال څخه چې ستا په اختيار کې دی ما ته هم څه راکړي، رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه ته وکتل او تبسم يې وکړ او امر يې وکړ تر څو هغه ته هم څه ورکړي) .

د صبر ثمره ډېر ښه وي، په داسې حالاتو کې معلم لره بې صبرې او ښنځل کول پکار نه

دي .

**۴- مهرباني او نرمي :**

معلم ته پکار ده چې د خپلو زده کوونکو سره مهربانه او نرمه رویه او سلوک وکړي د هغوی

زړونه کمزوري دي د سختی توان نلري ډېره سختي او بد سلوک د معلم او درس څخه د

زړه توروالی سبب ګرځي .

معلم به په لومړي قدم کې د زده کوونکو په زړه کې خپله مینه، محبت او مهرباني ځای

کړي کله چې د زده کوونکو په زړه کې د معلم محبت ځای پر ځای شي بیا په هغوی باندې

فشار او تأدیب کوم اثر نلري .

الله سبحانه وتعالی د خپل رسول صلی الله علیه وسلم په اړه فرمایي :

[فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّهِ لِنتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لاَنفَضُّواْ مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّهِ إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ] (آل عمران :۱۵۹ ) . ژباړه: (د الله مهرباني وه چې ته مسلمانانو ته نرم شوې. که ته بد خویه او سخت زړی وای نو دوی به ستا له چاپېره څخه خواره واره او تیت پرک شوی وای نو عفوه ورته وکړه، بښنه ورته وغواړه او په کار کې ورسره مشوره وکړه او کله دې چې هوډ وکړ نو پر الله پاک توکل وکړه) .

معاذ بن جبل رضی الله عنه وايي: چې يو ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم زه تر لاس ونيولم او ويي ويل: «يا معاذ إني لاحبك »ای معاذه ! يقيناً په ما باندې ګران يي. معاذ وويل: ای پيغمبر صلى الله عليه و سلم پلار او مور مې له تا قربان شي، ته هم په ما باندې ګران يي . ويي فرمايل :«أوصيك يا معاذ، لا تدعن في دبر كل صلاة أن تقول: اللهم أعني على ذكرك وشكرك وحسن عبادتك»

ژباړه: (تا ته وصيت كوم چې دا دعا د هر لمانځه نه وروسته ترک نه کړې: ای الله جل جلا له ! زما سره كومک وکړه تر څو زه د تا په ذکر او ياد كې ووسم او ستا شكر ادا كړم او ستا سم عبادت وکړم) (ابوداود ۱۵۲۲تحقيق رياض الصالحين با اسناد صحيح ۱۸۳ ) .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:«مَن يُحرِمُ الرِّفقَ يُحرَمِ الخَيرَ كُلَّه» (رواه مسلم ) .

ژباړه: چا كښې چه نرم خويي نه وه هغه د هر قسمه خير او نيكی نه محروم او بې برخې دی .

**۵- عدل او مساوات :**

د الله تعالی د جانبه د ټولو پيغمبرانو او آسماني کتابونو د نزول يو هدف په ځمکه کې د حق او عدل قايمول وو :

لقوله تعالى: [لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ] ( الحديد ۲۵) ژباړه: (يقيناً چې مونږ خپل پيغمبران له خپلو روښانه او څرګندو هداياتو سره وليږل او له هغوی سره مو كتاب او تله نازل كړی ؤ تر څو پرخلكو كې عدل قايم شي) .

معلم ته ښايي چې په سلوک، زده کړه، نمرو ورکولو او د تعليم په ټولو چارو کې د زده کوونکو تر مينځ د عدل قيام وکړي .

د خپلوۍ او ملګرۍ، خان او ملک تر تأثير لاندې رانشي تر څو صلب عدالت شي او همدارنګه د چا سره د تربګينت او عداوت له مخې د کوم زده کونکي حق پايمال نکړي .

لقوله سبحانه تعلى: [ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ وَلا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا ... ] [المائدة:8]. ژباړ: (اى مؤمنانو ! شى قايم د الله تعالى د پاره ګواهي ورکونکي په انصاف او د کوم قوم د دوښمنۍ په وجه انصاف مه پريږدى عدل کوئ) .

د عدل قيام عبادت دى چې ستر فضيلت لري او بې عدالتي ظلم دى چې په قيامت کې د تيارو سبب ګرځي .

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي :«إِنَّ المُقسِطينَ عِنْدَ اللَّهِ عَلى مَنابِرَ مِنْ نور: الَّذِينَ يعْدِلُونَ في حُكْمِهِمْ وأَهلِيهِمْ وما وُلُّوا » (رواهُ مسلم).

ژباړه: (مقسطين (عادل خلک ) به د الله تعالى په نزد د نور پر منبرونو قرار لري، هغه کسان چې ( په ور سپارل شوي ) حکم او مسئوليت کې او د خپل اهل او ولايت کې د عدالت رعايت کوي) .

**۶- حلم او حوصله اوله غصې څخه پرهيز:**

بې ځايه او ډير قهر او غصه کېدل ځينې وخت د سخت خطر سبب ګرځي لکه: دوښمني، عداوت او حتى د خولې څخه د کفر د الفاظو د وتلو سبب ګرځي . د قهر او عصې څخه پرهيز او د هغه کابو کول د متقيانو صفت دی، د دنيا او آخرت خير دی.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاء وَالضَّرَّاء وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ] (آل عمران 134). ژباړه: (پرهيزکاران هغه کسان دي چې په خوښۍ او نا خوښۍ دواړو حالاتو کې مالونه خيراتوي، قهر زغمونکي او خلکو ته عفوه کوونکي وي او الله پاک نيکي کوونکي خوښوي).

جناب رسول صلى الله عليه وسلم ته يو کس راغى چې ما ته نصيحت وکړه، جناب درى ځله هغه ته په تينګار سره وويل چې :« لاَ تَغْضَبْ» (غصه مه کوه ) .

همدارنګه فرمايي: :«لا تغضب ولك الجنة »(رواه صحيح الجامع و الطبراني).

ژباړه: (غصه مه کوه تا لره به جنت وي) .

پس معلم ته ښايي چې د معصومو ماشومانو سره نيک او مهربانه سلوک وکړي.

مګر د معلم د پاره په هيڅ صورت کې دومره نرمي کول نه دي پکار چې د صنف نظام اخلال شي، د معلم حق او عزت ته صمدمه ورسيږي او په صنف کې داسې کډوډې را مينځته شي چې حالات د څو بې بندباره چې نه غواړي درس زده کړي په ګټه تمام شي .

معلم ته شرعاً د تأديب حق شته داسې تأديب چې نيت يې اصلاح وي نه بل څه. تأديب د زده کوونکي په حالت پورې اړه لري چې ځينې يوازې په کتلو اصلاح کيږي او ځينې په خبره اصلاح کيږي او ځينې بدني تأديب غواړي او بدني تأديب به د اسلامي شريعت په چوکات کې وي .

**٧- که د ځان احترام غواړې د بل احترام کوه :**

معلم بايد د خپلو زده کوونکو احترام وکړي تر څو هغوی د ده احترام وکړي، زده کوونکو ته بايد بد او ناوړه الفاظ و نه کارول شي لکه: تمبله، غبي، جاهله، خره او نور ځکه د بدو او ناوړو الفاظ کارول حرام دي .

لقوله سبحانه وتعالى: [وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ ..] (الحجرات ١١) ژباړه: ( او يو بل په بدو لقبو مه بولئ) .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :«من حق المؤمن علي المؤمن أن يسميه بأحب أسمائه إليه ...») (تفسير انوارالقرآن سورة الحجرات ) ژباړه: (يو له حق د مسلمان پر بل مسلمان دا دی چې هغه په داسې نوم وبولي چې هغه د ده د پاره ډير خوښ وي) .

د ناوړه الفاظو کارول لکه: تمبل، جاهل، ناپوهه او نور د زده کوونکي په دماغ او علمي سويه سخت بد اثر لري .

همدارنګه معلم ته د ښځنلو څخه کلک پرهيز پکار دی ځکه داسې کول ګناه ده او کله دا کار د عداوت او دوښمنۍ سبب ګرځي، معلم زده کوونکي ته ښنځل کوي، زده کوونکي خپل والدين ورباندې خبروي چې په دې سره د دوښمني او حسد سبب جوړيږي .

او کله بيا د عکس العمل سبب کيږي، د پوهنتون يو استاذ قيصه کوله چې زمونږ په پوهنځۍ کې يو بد کلامه استاذ وو هغه يو ورځ يو محصل ته وويل: ای اولاد خر، نو محصل په ځواب کې ورته وويل: خير است شما پدر معنوی من استي.

## د خپل مضمون لیارې د زده کوونکو په ذهن کې د اسلامي اساسات ځایول

### د کیمیا او فزیک معلم:

په ځمکه کې ټول شیان الله تعالی د انسان د استفادې لپاره پیدا کړي دي .

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[أَلَمْ تَرَوْا أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ وَأَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهُ ظَاهِرَةً وَبَاطِنَةً ..] (لقمان : ۲۰ ).

ژباړه:آیا نه وینې چې الله تعالی د آسمانانو او ځمکې ټول شیان تاسې ته تابع کړي او خپل ښکاره او پټ نعمتونه یې ټول پر تاسې تمام کړي دي .

د کیمیا او فریک معلم ته پکار ده چې زده کوونکو ته د ماده پرستو دهرینو کوم چې په ماده عقیده لري مردوده عقیده په کله رد کړي او ورته بیان کړي چې :ټول کارونه د الله تعالی په اراده تر سره کیږي ځکه هر کار چې د هر سبب له مخې تر سره کیږي د هغه سبب هم د الله تعالی په واک او اختیار کې دی ځکه د هغه (جل جلاله) مخلوق دی.

د وریځې د حرکت سبب باد دی، باد د الله تعالی په اراده او امر چلیږي، د وریځو سبب وریځ ده وریځ د الله تعالی په حکم چلیږي، د ځمکې د شنه کیدو د پاره سبب باران دی، باران د الله تعالی په حکم اوریږي.

نن پر مختللی ټنالوجي د الله تعالی په اراده کې شامله ده ځکه ددې ټنالوجۍ کشف او اختراع د انسان په وسیله تر سره شوي ده، او الله تعالی انسان ته ددې ټنالوجي د کشف او اختراع توان ورکړی دی ځکه د هغه په دماغ کې یې په میلیونو حجرات ځای پر ځای کړي چې

په هغه کې دا توان شته  او دغه حجرات، عصبي سیستم، او د وینې دوران او د زړه او دماغ فعالیت ټول د الله تعالی مخلوق دی او د هغه په امر چلیږي.

د موجوده ټنالوجی لپاره ټول اسباب الله سبحانه وتعالی اماده او تیار کړي دي

دا چې د اوبو پر سطحه سترې بېړۍ حرکت کوي او نه ډوبیږي د اوبو پاسنۍ سطحې ته یې د مالیکولونو د جمع کیدو خاصیت ورکړی دی، دا خاصلیت الله تعالی ورکړی دی.

دا چې الوتکي پر فضا کې ګرځي، فضا له هوا او غازي مالیکولو ډله ده، دا خاصلیت الله تعالی ورکړی دی، کوم چې غازاتو ته یې د مالیکولونو د تښتې او فرار خاصیت ورکړی دی.

دا چې نن د مخابراتي سیستم لویه تنالوجي وجود لري دا د هوا د مالیکولونو د حرکت له وجې مینځته راغلی ده، هوا او د هغه واړه زرات او مالیکولونه د هغه سبحانه وتعالی په امر چلیږي ځکه چې دا یې ټول مخلوق دی .

«سبحان الله و بحمده سبحانه الله العظیم»

**د بیولوژي معلم:**

علم احیاء (بیولوژې) هغه علم دی چې د ژوندیو څخه بحث کوي، د دغه مضمون معلم ته په کار ده چې زده کوونکو ته دا بیان کړي چې الله تعالی په څومره ښه شان سره خپل مخلوق پیدا کړی دی، په غوره شان او هیئت سره یې انسان پیدا کړی او په ځمکه کې یې اکثره ساه لرونکي د انسان مدد ګار او خدمت ګار ګرځولي دي.

د کرهنې په ځمکه کې سره چینجي هر چا ته معلوم دي  د کرهنې او زراعت پوهان په دې باندې پوهیږي چې په یوه هکتار ځمکه کې په زرګونو چینجې د بزګر سره د مدد د پاره اخته دي او دغه پټ لشکر (چینجي ) ځمکه نرموي او د ځمکو لاندو طبقو ته نایتروجن، نور معدني مواد، هوا او اوبه رسوي.که دغه پټ لښکر خپل کار پرېږدي نو زمونږ ټوله خارې به عبث وي.

همداسې د شاتو  په مچیو  کې د الله تعالی د قدرت حیرانوونکې نښې پرتې دي :

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [وَأَوْحَى رَبُّكَ إِلَى النَّحْلِ أَنِ اتَّخِذِي مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا وَمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا يَعْرِشُونَ، ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلاً..] (النحل :۶۷-۶۸ ). ژباړه: (او ستا رب د شاتو د مچی په زړه کې ور واچوله چې په غرونو، ونو او هغو لوړو او دنګو ځایونو کې ځانونو ته ځالی جوړې کړئ، بیا هر ډول میوې وخورئ او په هغو لیارو والوزئ چې خپل رب درته آسانه کړې دي) .

د پورته آیت شریف څخه دا څرګندیږي چې مچۍ د شاتو په تولید نه پوهېدې ،الله تعالی هغوی ته الهام وکړ او د ژوند او فعالیت ترتیب او تنظیم يې ور وښودلو، دا واضح حقیقت دی چې د شاتو مچۍ یو عجیب منظم ژوند لري.

او الله تعالی مچیو ته د الهام په ذریغه لارښوونه وکړ چې په غرونو او ونو کې خپلې ځالې جوړې کړي او همداسې يې مچیو ته د الوتلو لارښوونه کړې ده .

مچی د ګلانو د شیرې ټولو لپاره کلو متره مصافه طی کوي ولی لاره نه ورځخه ورک کیږي بیرته خپلې ځالی ته راځي.

د شاتو مچی له پاکو ګلانو څخه شیره ټولوي او هیڅ ناپاک شی نه خوري او بلاخره ددې څخه شات جوړیږي.

د الله سبحانه وتعالی دغه پاک، ظریف او منظم لښکر د چا لپاره کار کوي؟

د شاتو مچۍ د کیلو متره فاصلو څخه د ګلانو شیره ټولوي او یا یې د کیلو متره فاصلو څخه په خپلو وزرونو کې خپلې ځالی ته انتقالوي تر څو شات تولید کړي او دغه خدمت او د شاتو تولید د چا لپاره دی؟

دا پاک، ظریف او منظم لښکر د انسان لپاره خدمت کوي، پس وګوره ! ای انسانه د ځمکې او آسمان مخلوق ستا لپاره تسخیر او ستا خدمت کوي پس ته د څه لپاره پیدا شوی یې او څه مسئولیت لرې؟

که تاسې د الله په قدرت کې په غور فکر او څیړنې وکړئ نو حیران به شئ او له ستر ګو به مو اوښکې وبهیږي بیا به د خپل رب (جل جلا له ) په مینه کې ډیر وژاړئ.

عرض دا چې هر څه د الله (جل جلا له) په قبضه او قدرت کې دي نو انسان به د خپل رب (جل جلا له ) د حدودو پابندي کوي ځکه چې دا هر څه د امتحان د پاره دي:

لقوله سبحانه وتعالى: [إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً] (سوره الکهف: ۷ ) ژباړه: (څه چې په ځمکه کې دي بې شکه مونږ د هغه لپاره ښایست ګرځولی دی، څو دوی وازمایو چې کوم یو د دوی په عمل کې ډیر غوره دی).

**د جغرافیه معلم :**

د جعرافیه معلم ته پکار ده چې د جهان د خلقت په باره کې د ځینو فلاسفه وو غلطې څرګندونې رد کړي او زده کوونکو ته د ځمکې او نورو سیارو، او په ځمکه باندې روان سیندونه او په هغه باندې میخ شوي غرونو او ټولو موجوده شیانو کې د الله تعالی د قدرت نښې بیان کړي .

هغه الله سبحانه وتعالی چې سترو سیارو ته حرکت ورکوي، شپه په ورځ او ورځ پر شپه باندې بدلوي .

قرآنکریم سوونه کاله مخکې خبر ورکوي چې الله سبحانه وتعالی پخپل قدرت سره لمر، ځمکې او سپوږمۍ ته د دوران او حرکت توان ورکړی دی او دغه سترې کرې د خپل ستر څښتن (جل جلاله) په حکم منظم ګردش کوي.

لقوله سبحانه وتعالى :[وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ] (الأنبياء:٣٣). ژباړه: او الله هغه ذات دی چې شپه ورځ، لمر او سپوږمۍ یې پیدا کړي. هر یو پخپل مدار کې لامبو وهي.

مګر بشر په شپږم قرن کې دا مسئله کشف کړه.

همدارنګه قرآنکريم سوونه کاله مخکې د بحر له تلې څخه خبر ورکوي .

او الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هَذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا مَحْجُورًا] (الفرقان ٥٣ ). ژباړه: (او الله همغه ذات دى چې دوه دریابونه يې سره يو ځاى کړي دا يو ډېر خوږ او تنده ماتوونکى، او دا بل ښه تريو مالګين دى او بيا يې د دواړو په مينځ کې پرده پيدا کړې ښه منع کړ شوې).

قرآنکريم څوارلس سوه کاله مخکې د دوو لويو بحرونو د جلاوالى او د هغوى په مينځ کې د پردې خبر ورکوي چې ددې کار تحليل د بشري تصور له مخې مشکل دى ځکه چې دا جلاوالى په سترګو نه معلومېږي او د انسان عقل ته به دا ډېره عجيبه وي چې څنګه يو ځاى روانې اوبه او مايعات د کوم اصلي ديوال پرته جلا شي.

مګر الله سبحانه وتعالى دغه بحرونه په خپل قدرت سره داسې جلا کړي چې تر مينځ يې پرده ده چې يو پر بل نه ورکډيږي، د علمي څېړنو له مخې حتى د يو بحر ماهى هغه بل طرف نشي ورتلاى ځکه چې په بل طرف کې ژوند نشي کولاى ځکه چې د اوبو خاصيت فرق لري.

قرآن کريم د بحر د تلې څخه خبر په داسې يو عصر او زمان کې ورکوي چې هغه وخت د کشف او مشاهدې هيڅ وسائل نه وو، چې دا د قرآن اعجاز دى او د قرآن منکرينو ته ستر پيغام دى چې دا کتاب د رب العالمين لخوا نازل شوى چې د خپل مخلوق د هرې برخې او حالت څخه خبر او عالم دى.

مګر بشر د ١٨ قرن په آخر کې د بحرنو د جلاوالى مسئله کشف کړه.

او بلاخره به د قيامت په ورځ د خپل څښتن (جل جلاله ) په لورې ور تولیږو :

[إِن كُلُّ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ إِلاَّ آتِي الرَّحْمَنِ عَبْدًا * لَقَدْ أَحْصَاهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا * وَكُلُّهُمْ آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا] (سوره مريم :۹۳-۹۵).

ژباړه: (څه چې په ځمکو او آسمانونو کې دي ټول به مهربان الله د بنده ګانو په توګه را وړاندې شي. ټول يې معلوم کړې او له مخې يې ګڼلي دي. او ټول به يو يو د هغه مخې ته وړاندې شي) .

**د تاريخ معلم :**

د تاريخ معلم ته پکار ده چې زده کوونکو ته د سيرت نبی صلی الله عليه وسلم، سيرت صحابه رضی الله عنهم، اسلامي تاريخ، اسلامي فتوحاتو په اړه معلومات ورکړي دا چې د خلفاء راشدين رضی الله عنهم په وخت کې عراق، ايران، افغانستان، چين او د پاکستان ځيني برخې د اسلامي امت د کوم فاتح جنرال لخوا فتحه شوې او د هند لويه وچه څه وخت د افغانانو په لاس فتحه شوه او همدارنګه د عبرت لپاره د اسلامي امت د تاريخي صالحو اشخاصو يادونه او د هغوی قيصې بيانول .

**د تربيه فني يا ترسيم معلم :**

د رسم معلم ته ښايي چې خپلو زده کوونکو ته د ساه لرونکو لکه: انسان، حيوان، مرغه د ترسيم ،تصوير او مجسمې د حرمت معلومات ورکړي او دوی ته دا واضح کړي چې د ساه لرونکي رسم او تصوير اخيستل په شرعي نصوصو حرام او په اړه يې سخت وعيدونه بيان شوي دي .

د ساه لرونكو پرته د نورو شيانو لكه: د انسان په لاس جوړ شوي شيان، نباتات، ونې، ځمكه، غرونه، سيندونو او نورو تصويرونه ايستل باك نلري جايز دي .

**د ژبې معلم (عربي، دري او پښتو) :**

د ژب پوهنې معلم ته ښايي چې په كورنيو كارونو، تمرينونو او پوښتنه او محاوره كې ګټور ديني او دنيوي شيان ځاى پر ځاى كړي او په ځينې كتابونو كې چې كوم عبثيات ځاى پر ځاى شوې دي د هغوى د ضرر په اړه وضاحت وركړي .

مثلاً: د اسلام څو بناوې دي؟، د سهار لمونځ څو ركعته دى؟، د نوروز لمانځل په اسلام كې حرام دي، د موسيقې اوريدل حرام دي .

د انسان لپاره وخت او زمانه زيات اهميت لري بايد وخت په عبثو شيانو تير نه كړي .

او همداسې د منحرفو اشعارو او سندرو نه د زده كوونكو منع كول او داسې نور ....

## د صنف او درسي نظام د سمون لپاره څو ټکې

۱- د درس ورکولو لپاره پوره پوره اماده ګۍ نیول .

۲- صنف ته د داخلېدو پر مهال سلام اچول او د درس په پیل کې «بسم الله الرحمن الرحيم» ویل .

۳- څو پورې چې صنف منظم شوی نه وي او ټول زده کوونکي متوجه شوي نه وي درس مه پیل کوه .

۴- کله چې صنف ته داخل شوې قهر او غصه مه کوه او په ورین تندې ودرېږه تر څو زده کوونکي مطمئن شي چې ته په ښه حالت کې یې او صنف ته له ننوتلو سره سم مه کېنه. داسې ځای ودرېږه چې ټول دې ووینې او بیا خپلو ټولو زده کوونکو ته نظر وکړه .

۵- د زده کوونکو حاضرې واخله تر څو دوی خپل وخت او حاضری ته متوجه شي .

۶- د درس په زده کولو او کورني کار کې زده کوونکي فرق لري ځینې یوازې اشارې او خبرې ته غوږ نیسي او عمل کوي، ځینې ترغیب ته اړتیا لري او ځینې بیا تأدیب ته اړتیا لري، نو ټولو زده کوونکو ته یو شان فکر کول پکار نه دي .

۷- زده کوونکو ته باید د امکان تر حده پورې درس آسانه شي او د درسي مضمون څخه علاوه ساده او آسانه مثلانونه ورته بیان شي تر څو دوی ژر ورباندې پوه شي او په دماغ یې فشار او زور ورنشي .

۸- په درس ورکولو کې باید د داسې الفاظو، عباراتو او لغاتو ویلو څخه ډه ډه وشي چې د زده کوونکو له عقل او سویې څخه لوړ وي .

زده کوونکي باید د دوی د عقلونو او علمي سویې په قدر مخاطب شي .

۹- معلم باید خپل درسي نظام ته متوجه وي، د درس ویلو، تکرار، سوالونو لپاره وخت وویشي او همدارنګه د ټول فصل درس پر ورځو وویشي چې پخپل وخت داسې خلاص شي چې نه درسي نظام نیمګړی شي او نه هم پر زده کوونکو فشار ورشي .

۱۰- معلم ته پکار ده چې د زده کوونکو تر مینځ د محبت فضاء را مینځته کړي د ځینې زده کوونکو کورنۍ تربیه سمه نه وي د نورو زده کوونکو سره جنجال کوي چې په دې سره د زده کوونکو د دماغي ناآرامۍ سبب ګرځي .

۱۱- د سوال کوونکي سوال ته په حوصله ځواب ورکول .

۱۲- په تخته باندې د لیکلو پر مهال په یوه مناسبه زاویه دریدل تر څو صنف دې تر نظر لاندې وي .

۱۳- معلم د زده کوونکو سره په سلوک کولو کې باید عادل وي د لوی او وړوکي، غني او فقیر، سپین او تور، پاک او ناپاک فرق ونه کړي، ځکه چې د زده کوونکو سره په عدل تعامل هغوی ته د نردې والی بنسټ دی تر څو د ځینې زده کوونکو د حسد او عداوت سبب نشي .

۱۴- د صنف د نظم د پاره د صنف د مشر زده کوونکي ځخه کار اخيستل، د ځينې زده کوونکو ځای ته تغير ورکول، په خبره مخاطب کول او يا تأديب ورکول تر څو د نورو مزايم جوړ نشي.

۱۵- د درس زده کولو لپاره کورنی کار خاص اهميت لري ځکه چې په کورني کار کولو سره د زده کوونکي دماغ عملاً په فعاليت راځي، دا په هغه صورت چې کله د معلم لخوا هر وخت کنترول او چک شي او هغوی خپلو نيمګړتياوو ته متوجه شي .

## د مدرسې او مکتب سر معلم

ای د مدرسې او مکتب مدير! ته د مدرسې او مکتب قائد او مشر يې او تا ته لوی مسئوليت متوجه دی او تا ته داسې امانت متوجه دی چې په دنيا او آخرت کې د هغه په اړه پوښتنه تر ځخه کيږي .

ته د معلمينو، زده کوونکو، د زده کوونکو د والدينو، د مکتب د تعمير او وسائلو او تعلمي نظام او حتی د مکتب تر چوکيدار پورې د ټولو اړخونو مسئول يې .

## نو تاته د څو ټکو يادونه کوم ان شاء الله چې ګټور به درته تمام شي

۱- د معلمينو تر مينځ ټول مسئوليتونه اهليت ته په کتلو سره عادلانه وويشه .

۲- هيڅکله د زده کوونکو په مخ کې معلم مه سپکوه او هغه ته د زده کوونکو پر وړاندې نصيحت مه کوه او د زده کوونکو پر وړاندې د هغه نيمګړتيا وې مه بيانوه.

۳- په درسي نظام او سمون کې له معلمينو سره مشوره کوه .

۴- د مکتب تعمير او سامان په بيت المال پورې اړه لري د هغه ساتنه کول واجب دي .

۵- د صنفونو د شروع څخه مخکې د زده کوونکو پيل درول خاص اهميت لري ځکه په لږ وخت کې يوه د خير خبره تر ټولو پورې رسيږي او دغه وخت مهمو مسائلو لکه: د زده کوونکو ديني او اخلاقي ترتبې ته ورکول او په هغه کې د زده کوونکو برخه اخيستل مهم اهميت لري .

۶- معلمين او زده کوونکي د دين مهمو احکامو ته متوجه کول لکه: د اوه کلنۍ نه تر نه کلنۍ پورې ماشومان بايد ټول قرآنکريم په تجويد سره پوره زده وي، طهارت او لمونځ يې پوره زده وي او په همدې سن کې عملاً په لمانځه ودرول شي. او همدانګه هغوی ته د دين نور مهم احکام، مسونه دعاګانې، اذکار ور زده کړ شي .

۷- د معلمينو او زده کوونکو لپاره د اوداسه او لمانځه د ادا کولو ځای برابرول .

۸- د لنډغرو او بدمعاشانو پر وړاندې مبارزه، کچېرې په مکتب کې کوم لنډغر او بدمعاش کس يا ډله موجوده وي په فوري شکل يې بايد مخه ونيول شي او د مخنوي په اړه د مسئولو کسانو سره خبره شريک شي ځکه چې دا لنډغر له يوې خوا د نورو زده کوونکو د فکري او دماغي اخلال او نا آرامۍ سبب ګرځي او له بلې خوا همدا لنډغر سبا ورځ د کلې، سيمې او دين لپاره لوی درد سر جوړيږي نو علاج يې همدا اوس پکار دی .

۹- کچېرې تا ته کوم زده کوونکی د شکایت لپاره راشي هغه مه رټه د هغه خبرې ته پوره غوږ شه د شکایت په اړه تحقیق وکړه کچېرې یې شکایت پر ځای وو، حق یې ورکړه او که نه قناعت ورکړه.

۱۰- کچېرې تا ته د معلم څخه زده کوونکي شکایت کوي ته د هغه په اړه پوره تحقیق وکړه ځکه ځینې وخت هغه کسان چې خپله درس نه زده کوي خپل مسئولیت پر معلم ور اچوي .

۱۱- که معلم تاته د زده کوونکو څخه شکایت وکړي د هغه په اړه تحقیق وکړه او د معلم سره په نظم کې پوره مرسته وکړه .

۱۲- په هیڅ صورت کې د کوم معلم تخریب مه کوه، ځکه معلمینو ستا د مکتب درسي نظام روان کړی او ستا سره یې لوی مسولیت پورته کړی دی، د هغې تخریب داسې دی لکه خپل لاس دې چې پرې کوې . که هغوی ته نصحیت کول غواړې نو مخامخ یې ورته وکړه .

۱۳- د معلمینو د فعالیت، سستی او غفلت څخه باید پوره خبر ووسې .

۱۴- زده کوونکي د شیطاني مډیا (فلم، تصویر، موسیقۍ ) او نورو نا وړه اعمالو څخه کلک منع کول او د هغوی کلک څارل. د هغوی درسي نظام، د زده کړې طریقه او د زده کوونکو علمي سویه باید پوره وڅارې .

۱۵- د امتحاناتو پوره څارنه او معلمينو ته په عدل باندې تينګار کول، د نقل او فريب پر وړاندې سخته مبارزه کول ځکه چې نقل د زده کوونکو ملا ماتوي، څوک چې په نقل کولو عادت شو هغه ته بيا د درس زده کول خوند نه ورکوي .

**والدين کرام :**

دغه رساله اصلاً د معلم لپاره ترتيب شوې خو په مختصر ډول د زده کوونکو والدين کرام ته په دوو ټکو نصيحت کيږي :

۱- د خپل اولاد ديني ، تربيتي او علمي څارنه ، د والدينو کرامو بايد دې ټکې ته پوره پام وي چې اولادونه مو که له ( ۴-۶) ساعته له معلم سره وي خو پاتې عمر يې ستاسې تر څارنې لاندې تيريږي ، کله داسې هم وشي چې په مکتب کې د خلکو په بچيانو ډيره خواري وشي خو د خپلو والدينو د غفلت له لاسه هغه هر څه برباد شي .

د خپلو اهل او اولاد ديني او اخلاقي ترتبيه ته پام او څارنه کول د کور د مشر او سرپرست او د هغه په غيابت کې د مور مسئوليت دی ، خپل اولاد بايد پوره وڅاري چې هغه چېرې ګرځي ، د چا سره ګرځي ؟ څه کوي ؟ آيا درس وايي ؟ کورنۍ کار تر سره کوي ؟ په اوه کلنۍ کې لمونځ کولای شي ؟ په لس کلنۍ کې لمونځ کوي او که نه ؟ جومات ته د ديني درس لپاره ځي او که نه ؟ لمونځ په جومات سره ادا کوي او که نه ؟ او داسې نور .

**والدين كرام !**

نن ځو ورځې له خپل اولاد سره تکلیف او زحمت تیر کړئ ، هغوی له بدو کارونو څخه په کلکه منع او ښو کارونو ته یې تشویق کړئ ، جومات ته یې د قرآن او د دین د زده کړې د پاره ولیږئ، اسلامي تربیه ور وښیئ ، د اطاعات په حصه کې یې کلک وڅارئ ، کوڅه کشتۍ ، د فاسدو خلکو له ملګرۍ ، د فلمونو ، سریالونو څخه یې وژغورئ ، د ځو ورځو د تکلیف په وجه به ټول عمر آرامه سرلوړي او په دنیا او آخرت کې ور باندې خوشحاله او افتخار کوونکي وئ .

او که نن ورځ غفلت او سستي وکړئ چې زما د سر څخه چپ وي ، زه آرام وم ، ولو که په کوڅو کې ګرځي ، ولو که ګیم وکړي ولو که سریال او فلم ته کینې ولو که جومات ته نه ځي ولو که د دین څخه بالکل ناخبره وي خو چې زما د سر نه چپ وي او مونږ آرامه وو او مونږ ته شور او غالمغال ونه کړي ، نو پوه شه چې دا د ځو ورځو غفلت او سستي به مو ټول عمر غم وګرځي .

۲- ضروري شرعي علم په نارینه او ښځو دواړو فرض دی ، ډیر والدین د خپلو لورګانو او خویندو دیني علم او تربیت ته هیڅ توجه نه کوي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: « طلب العلم فريضة على كلّ مسلمٍ » یعنې: د علم طلب په هر مسلمان (نر او ښځه) فرض دی.

د پورته حديث څخه د شريعت ضروري علم مراد دی لکه: عقائد، د طهارت،لمانځه، روژې، زکات او حج احکامو،اسلامي حجاب،ضروري معاملات، آداب او د ګناهونو او حرامو پېژندل او داسې نور.

الموسوعة الفقهية ليکي:

په پلرونو او ميندو لازمه ده چې خپل اولاد (هلکانو او نجونو) ته د شريعت ضروري احکام ور زده کړي لکه:طهارت، لمونځ، روژه او نور او همدارنګه د حرامو شيانو زده کړه لکه: د زنا، لواطت، غلا، شراب، غيبت، بهتان او نور زده کړه وربانديې واجبه ده.

جاء فى الموسوعة الفقهية:

على الآباء والأمّهات تعليم أولادهم الصّغار الطّهارة والصّلاة والصّوم ونحوها، وتعليمهم تحريم الزّنى واللّواط والسّرقة، وشرب المسكر والكذب والغيبة وشبهها، وأنّهم بالبلوغ يدخلون في التّكليف.

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

« من كانت له بنت فأدّبها فأحسن أدبها، وعلّمها فأحسن تعليمها، وأسبغ عليها من نعم اللّه الّتي أسبغ عليه كانت له ستراً أو حجاباً من النّار »

ژباړه: چا لره چې يوه لور وي پس هغه ته نيک تربيه او نيک تعليم ورکړي او د الله (جل جلا له) د ورکړيو نعمتونو څخه هغې ته څه ورکړي، نو ده لره به مانع او پرده شي له دوزخ څخه.

دا چې د نجونو او ښځو لپاره د زده کړې ځنګه باستره او با پردې د نارینه څخه کاملاً جلا ځای برابر شي د مسلمانانو په مسئولینو او علماوو پورې اړه لري ، ځکه چې د هلکان او نجونو اخلاط او کډون حرام دی.

وجاء في فتاوى اللجنة الدائمة (١٥٦/١٢):

"أولا: الاختلاط بين الرجال والنساء في المدارس أو غيرها من المنكرات العظيمة، والمفاسد الكبيرة في الدين والدنيا، فلا يجوز للمرأة أن تدرس أو تعمل في مكان مختلط بالرجال والنساء، ولا يجوز لوليها أن يأذن لها بذلك.

(اول دا چې: په مدارسو او مكاتبو او نورو ځایونو کې د سړیو او ښځو تر مینځ اختلاط ستر ګناه او د دنیا او آخرت عظیم فساد دی، ښځې ته جایز نه ده چې د سړیو او ښځو په مختلط ځای کې تعلیم زده کړي او د ښځې سرپرست ته جایزه نه ده چې هغې ته اجازه ورکړي.

و ما توفيقي الا بالله عليه توكلت و اليه انيب

## مأخذ

1. نصائح للمعلمين مع بداية الدراسة/ شيخ محمد صالح المنجد
2. نصائح وتوجيهات للمعلمين والمعلمات/ شيخ ابو عبدالله الذهبي
3. نداء إلى المربين والمربيات، لتوجيه البنين والبنات / شيخ محمد جميل زينو
4. المدرس ومهارات التوجيه، للشيخ محمد بن عبد الله الدويش
5. د ماشومانو روزنه / آن لاين اسلامي لارښود ويب پاڼه

**حمدالله "شاكري" غفره ولوالديه**

طالب العلم الأكاديمية الأسلامية المفتوحة